

# دواصل روښانی خوشعرونه

د بایزید روښان د بین المللی سیمینار په وياړ

د

پوهاند عبدالشکور رشاد

په مقدمه او تصحیح

پښتو ټولنه

۱۳۵۳




دپښتو ټولنې دخپرونو

پر له پسې نومره (۲۰۱)



# دواصل روښانی څوشعرونه

دپوهاند عبدالشکور رشاد

په مقدمه او تصحیح




پښتو ټولنه

۱۳۵۳

# دبایزید روښاند ږیوال
# سیمینار ټه ویاړ

د چاپ ځای : دولتی مطبعه

د چاپ شمیر : زر ټوکه

# سریزه

که څه هم پښتو ټولنې ته د یوې علمي او ادبي اکاډمی په حیث د کلاسیک آثارو څیړنه او خپرونه ورپه غاړه ده او ټاکل شوې وه چه دواصل دشعرونو مجموعه ،ددولت لواڼی دیوان اوځینې نور پخواني آثار په خپل وخت چاپ کړی مگر دبایزید روښان دمړینې دڅلورسوسې کلیزې په ویاړ، ددې مجموعې چاپونه حتمی وګڼل شوه.

دواصل روښاني بیوگرافي د پوهاند عبدا لشکور رشادله خوا لیکل شوې ده او داباوري خبره ده چه ددې اشعارو له خپریدونه وروسته به څیړونکو ته موقع په لاس ورشی چه د روښانیانو نهضت او ادبی مکتب په ځیرتیا او ژورتیا مطالعه کړی او په ځینو تیارو گوټونو به یې رڼا واچوی.

الف

دروښان له آثارو سره دواصل دشعرونو پرتلنه ، داشعارو
له متن څخه دواصل دژوند او جهانبینې څرګندونه
دروښانیانو دوخت دژبې اولهجو څیړنه ، دهغه وخت
کلتوري ا رزښتونو پلټنه او ددې په شان یو شمیر نور
موضوعات شته چه ددې شعرونو په مرسته تریوې اندازې
پورې سرته رسیدلی شي .
ددې اثر په چاپولو کې دنامتو محقق پوهاند رشاد
زیار او مرسته دمننې اوستاینې وړده . دپښتو ټولنې د
ادب او ټولګو ر څانګې او ښاغلی حبیب الله د خپرونو
څانګې مدیر هم ددې اثر په خپرولو کې پوره برخه
اخیستې ده. زه دوی ټولو ته دمطبعې د کارګرانو او
کارکوونکو په ګډون ، دزیاتو خدمتونو په لاره کې
بریالیتوب غواړم .

محمد صدیق روهي
د پښتو ټولنې رئیس

# روښاني واصل

مخکې له دې چه په روښاني و اصل باندې خبرې وشي ، ښه به داوي چه د پښتو اکاډ سی د ادب او فولکلور څانګې د کارونو او څېړنو څه رنګوالی په ګوته شي او په دې برخه کې ښاغلو لوستونکو ته څه ناڅه نوي معلومات وړاندې شي.

د ادب او فولکلور څانګې د چارو څرنګوالی خو له دې امله یو اجتماعي ضرورت دی چه د ټولو اجتماعي پدیدو (ادب او فولکلور) د څېړلو او تحقیق مسئولیت ور په غاړه دی او دا مسئولیت هلته

تر یوې انداز ې پور ې پر ځای کېد ای شي
چه ، د چار و د ا ر تباط ا و بېلتو ن حد و د
و ټاکل شي .
د همدې اصل پربناء د ادب او فولکلو ر څانګه د
پښتو ژ بې کلاسیک او معاصر ادبي او فو لکلو ر یک
آثار تر خپلې علمی او اکاډیمیکې څېړنې لاندې نیسي
او په دې بر خه کې و خت په و خت خپر و نې کو ي .
له بلې خوا د ادب او فو لکلو ر څانګه په دې څخه
کې ده چه، د پښتو ژ بې کلاسیک او معاصر ادب
او فو لکلور د جهاني ادب او فو لکلو ر سره اړخ
په اړخ تر مطالعې لا ندې راولي او دیوه ا و بل
تأ ثیر ا ت او ا غېز ې په مستند ډ و ل لو ستو نکو
ته و ړاندې او خپر ې کړ ي .
همدا او س د ادب او فولکلو ر څانګه د خپلو
و ر سپارل شو یو و ظایفو په چوکاټ کې د رو ښاني

و اصلي د شعر و نو مجموعه چه یوه قصیده او

پنځلس غزلي دي، د پښتون بایزید روښان د مړینې

د څلو رسومې کلیزې په ویاړ پښتني ټولنې ته

وړاندې کوی.

د روښاني و اصلي د شعر و نو دا مجموعه

د کند هاری اختر په بیاض کې وه او له هغه نه

زموږ د پر ګران او محترم همکار ښاغلي حبیب الله

چه په دې وختو کې د څېړ و نو څانګی مسئو ل

مدیر دی، رانقل کړه.

نقل شوې رساله د دوهم ځل د پاره مقابله او

و روسته له هغې نه چاپ ته وسپارله شوه.

د روښاني و اصلي بیوګرافي د پوهاند عبدالشکور

رشاد په قلم لیکلې شوې او په دې باره کې

لو ستو نکو ته مستند، پاخه او په زړه پورې

معلومات وړاندې کوي.

داشعار و داسجموعه چه د لو ستو نکو په مخ کې
ده، د کمیت له مخې ډېره وړه، مگر د کیفیت له
پلوه ډېره غني او دپو ره استفادې وړده .
داستفادې وړخوپه دې ده‌چه،د پښتو ژبې محققینو ته
دپخوانیو ادبي آثار و په لړکې یو په‌زړه‌پورې
اثر په لاس ورځي او هغه هم داسې اثرچه‌شاعریې
معلوم او شعرونه یې د گمنامۍ په تورو کندو کې
ترتو روخاو رولاندې وو .
له نېکه مرغه اوس داشعرونه هم پیداشول،
کاروربانديې وشو، چاپ شول اوپښتوخېړونکو
ته په لاس ورغلل .
گوروبه چه دپښتوادب په‌منظومه ذخیره کې
کې به د دې اثرپه زیاتېدوسره دروښانیانو
د نهضت اوادبي مکتب په‌خېړنه او پلټنه کې
خومره زیاتوالی اوکړه والی‌منځ‌ته‌راشي‌او

تر کومه حده پورې به دهغه وخت دکلتوري

ارزښتونو ، ژبنيو پرابلمو نو، غا مضمو فکري

تضا دو نوا وا ستقامتو نو په تنتوا و تيارو گو ټو نو

باندې رڼا واچولی شي.

«و اصل پېژ ندنه» يا دروښاني و اصل بيوگرافي

هغه تحقيقی ليکنه ده چه پياوړي استاد پوهاند رشاد

صاحب ليکلې ده . دادب او فولکلو رځانگه د

رشاد صاحب دغه زيار او سر سته نه هېر وي او

داحترام په سترگه ورته گوري .

داځانگه د واصل داشعارو په چا پولو او

تصحيح کولو کې دښاغلو حبيب الله رفيع او زلمي

ز

څخه د مطبعې د کارګرانو او کارکوونکو په ګډون تشکر کوي او د وی ټولو ته دلا زياتو بريا ليتو بو نو غوښتنه کوي.

په درناوی

**دکتور سيد ال شاه پولاد**

د پښتو اکاډمۍ د ادب او فولکلور څانګې لوی مدير

# دوا صل روښانی لنډه

## پیژ اند نه

په هندوستان کې دلودي پاچهي تر ړنګیدلو یو کال دمخه (په ۹۳۱ ه،ق) داو رسړو پښتنو په یوه داسې کورنۍ کې چې دشپړو پښتو خخه ستانه (روحاني) او عالمه کورنۍ یاد یدله یو هلك وزیږ یده، ددغه هلك پلار (قاضی عبدالله) په ارثی توګه داسلامی تصوف له تاریخه سره ښه اشناو او دتبرك دپاره یې پر خپل زوی باندې دطیفوریه طریقې دمؤسس نامتو بزرګ با یزید طیفور

بسطامي (په ۲٦۱ ﻫ ،ق سړ) نوم کښيښو د .(۱)
دغه پښتون بايزيد دخپل وخت نامتو بزرگ
سو ، ډير پښتانه يې مريدان سول او په خپلو
ارادتمندانو کې يې درو ښان پير لقب وګا ټه.
پښتون بايزيد دخپلو پيروانو له پاره په معرفت
او سلوك كې دوحدت الوجود لاره خلاصه کړه،
او خداى د پيژندګلوى دغه غامضه فلسفه او
پيچلې مسئله يې داسى تلقين کړه ، چه تردرو،
خلور و پښتو پوريې دتلقين اغيزې په ډير قوت
پاتې وې ،دده په پيروانو کې دوحدت الوجو د
دفلسفې داسې مبلغين پيداسول،چې ددغې غامضې

(۱) طيفوريه طريقه د خواجه عبد الخالق غجدوانى
(٥٧٥ ﻫ ق مړ) را هيسى د خواجګانو طريقه يادېد له
او د خواجه بها ء الدين نقشبند (۷۹۱ ﻫ ق مړ) را هيسې
د نقشبندي طريقې په نامه ياديږي .

فلسفې په باب يې غوندديوانونه وکښل او د پښتو ادب په منظومه ذخيره کې يې دقدرو ړ زياتوب راووست .

دوحدت الوجود په د غو پښتنو مبلغينو کې يو هم و اصل روښاني دی ،چې په پښتنيتو لنه کې د پښتو ژبې ديوه خوږ ژ بي شاعر په توګه پيژندل سوی دی .

**په پښتو آثاروکې د واصل روښاني ذکر :**

د پښتونو ميالی شاعرخوشحال خان خټک «۱۰۲۲ — ۱۱۰۰ ه ، ق) په خپل ديوان کې د يو معاصر شاعر په توګه دو اصل ر و ښانیذکر داسې کړی دی:

چې لاف وهي د شعر

نن په داد ور دي ډير

خدای دې نکاچې به وايم

حال د د يو تير و ببر

خوکپا وی خوک نیم پاوی دی
قلندر پکښې نیم سېر

دسو بہ په حساب دی
هیڅ سې ندی واصل هیر

بل دولت فقیر دری پاوه
زه ترې خو شیر شاهی تېر

چې په سرای کې به پیداشی
پسله قرنه پوره سېر
[دکلیات ۹۷۴ مخ]

دخوشال خان مشرزوی اشرف خان هجری(۱۰۴۴
- ۱۱۰۶ ه ق) دپښتو ژبې دغوره شاعرا نوپه
ډله کې د«واصل» ذکرداسې کړی دی:
شاعران دپښتو گویاخهره دی
د«میرزا» شعر شمله بلکه افسردی

تکلف په دا کې نشته باورو کړه

په دافن یې گرووړ ی له یوهردی

نن په دادور که نه شاعران غواړي

که دوه دري تنه دگر یو «قلندر» دی

خوږ زبان یې په زبان شکر ی لوني

هغه واف چې مستقري پیښور دی

د «رحمن» په ویل ځای دلقب نشته

چې یې ماشعر منظور کړمعتبر دی

«ارزانی»، «دولت» دخپل دوربلبل وو

نن یې وللي زماني دشعر فر دی

د «واصل» له شعره خه وایم وچاته

---

چې زما په سخ یې پوري دحال در دی

نور قابل دیادونه دي په داذیل

نه یې شعر سنجیده نه د با ورد ی

(دیوان هجری ۲۴۸ مخ)

متأخرشاعرمیرزاحنان بارکزی‌چی‌په ۱۲۹۲ ه ق

کال یې خپل دیوان بشپړکړی دی ،دواصل‌ذکر

داسې کوی :

بل اخوند سیادادعشق‌په میوسست ؤ

ښه شیرین الفاظ ویلی دي واصل (۲)

---

دواصل ذکر دپښتنو شاعرانو په ځینو نورودیوانو

کی هم سته :اود پښتانه‌شعراءدلومړی‌توك په‌مقدمه

کې‌یې‌هم‌دخوشالخان اومیرزاحنان‌دد یوانونوپه‌استناد

دیو ه‌پښتانه شاعر په توگه فقط د نامه په ذکر

اکتفا سویده (۳) ،داځکه‌چی‌د پښتانه شعراء دلومړی

---

۲ـ د میرزاحنان د د یوان ۶۲ مخ ،دکابل دپښتو

ټولنی چاپ .

۳ـ وگوری دپښتانه شعراء دلومړی توك ۲۶ مخ د

کابل چاپ .

تهوك دچاپ تروخته (۱۳۲۰ ش کال) پورې هيڅيرى
هم دواصل روښانى د پښتو اشعارو يوبيت لا هم نهؤ
وندسوی اود پښتانه شعراءفاضل مؤلف ښاغلى پوهاند
عبد الحی حبيبی غوندې محقق ته هم د واصل روښانى د اشعارو
څرک هيڅير ته په لاس نهؤ ورغلى . مولانا قيام الدين
خادم دبايزيد روښان نومی کتاب په ۵۷ مخ کې
د دغه مطلب داسې ملاتړ کوي :
«د و اصل په نامه په قديمو شعر اؤ کې سو بيو تن
پيژنو ، چې د هغه کلام سو نږ ته نه دی را رسيدلی.»

## دغريبک کندهاری کتابخانه او دواصل روښانی د ديوان منتخبات :

د کندهار دښار دبامیزو په کوڅه
کې يو لوی مسجد شته چې «د زړې جامع»
په نامه مشهور دی او ويل کيږي چې
د کندهار داحمد شاهي ښار تر ودانولو پخوا
دغه جامع مسجد پر دغه ځای ودان ؤ .

ددغې جامع مسجد دامامت او خطابت چارې د
څو پېړيو را هيسې دېوې کاکړې کورنۍ په
لاس کې دي، چې دغه کورنۍ په کندهار کې
دزړې جامع داخند زاده ګانو په نامه شهرت لري.
ددغې کورنۍ يو متأخر سړی عبدالاحد اخندزاده
نوميد، چې له خپل نامه سره به يې «غريبك» هم
ليکه، او د کندهار له ښو خطاطانو څخه ؤ. غريبك
په خپل کور کې يوه داسې مغتنمه کتابخانه
درلوده، چې د خپل کم او کيف په لحاظ يې په
درست کندهار کې ساری لږ ؤ. ده ته د کتابو دراټولولو
هڅه له خپل پلار ملا عبدالخالق اخندزاده څخه پاته
وه. او د «غريبك» کتابخانې ددغې
کورنۍ دڅو پېړيو د علمي او ادبي ذوق
نماينده ګي کوله. په ۱۳۲۹ ش کال «غريبك» سړسو

او دده مغتنمه کتابخانه بې سرپرسته پاته سوه.

د ۱۳۳٦ش کال دحمل په میاشت کې دغه کتابخانه

خرڅه سوه او دفیض لمن یې تر ملکو، ملکو پورې

اوږده سوه، په دغه فیض کې یې ما هم څه برخه

و درلوده او خو قلمي کتابه په خورا کښته بیه

لاس ته څنې راغلل. یو له هغو کتابو څخه دملا

اختر کندهاري بیاض و ، چې ما په رانیولې بیه

(فقط لس افغاني) پښتو ټولنې ته ورکړ .

دملا اختر کندهاري په بیاض کې دو اصل روښاني

یوه قصیده او پنځلس (۱٥) غزلې هم خوندي دي.

چې دادي او س د پښتو ټولنې په زیار دیوې رسالې په بڼه

پښتنې جامعې ته وړاندې کیږي او د پښتو ادب مینان د

و اصل روښاني په لوړ ادبي مقام خبروي. دو اصل

ددیوان په دغو منتخباتو کې د (ت) درد یف درې

غزلې د(ل) درد یف یوه د (ن) درد یف دوې، د

(و) دردیف‌یوه غزله‌سته .پاته (۹) غزلې او یوه قصیده یې د (ی)دردیف دي . دملااختر کند هاری له بیاضه څخه مـا خلور غزلې په ۱۳۴۰ ش کال دیوولسم او دوولسم ټولګیو په پښتو قرائتونو کې را اخیستلې او دلوسړی پلاله‌پاره سې د واصل روښاني داشعارو نمونې افغانی ټولنې ته وړاندې کړې (۴) .

## د بستان مذاهب او دواصل دژوند زمانه:

دبستان مذاهب یو کتاب دی ،چې دیوولسم هجری‌قرن‌په منځنیوختو کې په پارسی ژبه کښل سویدی .دغه کتاب‌چې ۱۲ تعلیمه‌لري،

---

۴ـ د یوولسم ټولګی په پښتو قرائت کی د «خود پرست» او«حقیقی و اصل» ترعنوانو لاندی‌ددو همچاپ ۱۰۴ ـ ۱۴۴ مخونه‌وګوری، ددوولسم ټولګی په پښتو قرائت‌کې «دبې عمله شیخه !» او« د شریعت رسی» تر عنوانو لاندی، ۸۵ ـ ۱۱۱ مخونه‌وګوری .

نهم تعليم يې درو ښا نيانو په باب‌دی (٥) .د
دبستان مذاهب متنازع فيه مؤلف(٦) له و اصل
روښاني سره ليدلي دي ،او درو ښانيانو په باب
زيا تره معلومات‌دده له خولې رانقل کوي .د

٥– وگوري‌د بستا ن مذا هب له ۳۰۴ مخه څخه تر ۳۱۱ مخه پورې دکا نپور د نول کشو رچا پ ۱۳۲۱ه ق.

٦ –– سرو يليا م جونزلو مړی ختيځ پوها ند دی چې وا يی د بستا ن مذا هب‌دمحسن فا نی‌کشميری(۱۰۸۲ه ق‌مړ) تأليف دی. د مآ ثر الامرا مؤلف‌صمصام ا لد وله‌شهنوا ز خا ن (۱۱۱ – ۱۱۵۱ ه ق) دد بستا ن مذا هب‌مؤ لف ذوالفقا ر علی بو لی . چی‌مو بد يې تخلص و – ملا فيرو ز زر د ښتی هم د د سا تيں‌نو مي کتا ب په سريزه کې د د بستا ن مذا هب مؤلف ذ وا لفقا ر علی ښيیی ا و د فر هنگ نظا م مؤلف سيد محمد علی د اعی ليکلی د ی: د د بستا ن مذا هب کو مه قلمی نسخه چې‌زما سره سته، په‌هغې کې د مؤلف نوم ذ وا لفقا رعلی ا لحسن او تخلص يې (هو ښيار ) کښلی دی .

مثال په توګه دنوسوړی کتاب په ۳۰۵ مخ کې داسې کښلي دي :

«بامیاو اصل روشنی ،نامه نګار ګفت: که(۷):
بایستی حضرت میا( بایزید روښان) فرمودی...
(میاو اصل روشنی ) خوشد ل شده کنارحا لنامه

---

۷ـ د « با یزید روښان » په ٥٦ مخ کې چې د د غی جملې لوست خرنګه دمولانا قیاما لدین خان خادم له خوا سوی دی، زما په خیال د تأمل وړ دی . ز ه له نا مه نګار څخه د بستان مذاهب دمؤلف معنی اخلم او ( روشنی ) د واصل صفت اونسبت ګنم ، زما ددې وینا ملا تړ ددبستان مذاهب په نورو تعلیموکې هم موندل کیږی . مثلاً په ۴۴ مخ کې یې و یلی دی : « در هزار وسی وشش هجری در کشمیر راقم نامه و ( فرزانه بهرام مؤید سروش) را در یافت » په ٥۳ مخ کی یې و یلی دي: « در هزار وچهل و هشت هجری نامه نګار در کشمیر با او ملاقات نمود . »

نبشت ... » ددغه اقتباس له وروستی جملې څخه
څرګندیږي چې دحالناسې کومه نسخه چه ددبستان
مذاهب مؤلف درو ښانیانو حالات ځنی رانقل
کړيدي، دنوموړي واصل روښاني سلکیتؤ،
او دهغې پرحاشیو باندې یې دخه لیکلو واك درلود.
ددبستان مذاهب دتألیف نیټه په ستفق علیه ډول نه
ده څرګنده ،دستن له ځینو جملوڅخه داسې څرګندیږي
چې داکتاب تر ۱۰۵۵ ھ ق کال دمخه
شروع سوی دی اوتر ۱۰۶۲ ھ ق کال پوری یې
دلیکلو کار دوام درلود. په تیره بیا دروښانیانو
حالات مؤلف تر ۱۰۵۸ ھ ق کال وروسته کښلي
دي ،داځکه چې دی دروښانیانو دتعلیم په باب کې
داسې وایی « الهداد خان جلال الدین (بن میار وښان)
بخطاب رشید خانی سرفراز شده دو دکن بمنصب
چهار هزاري کامیاب گشته در هزار و پنجاه‌و

هشت وصال یافت»(۸) . له دغه اقتباسه څخه
داسې څرګندیږي چې له واصل روښاني سره د
دبستان مذاهب دمؤلف لیدنه کتنه تر ۱۰۵۷ ه ق
کال و روسته او تر ۱۰۶۳ ه ق کال دسخه سو یده
او تر دغو کلو پورې دواصل روښاني ژوند
یقیني دی. د ۱۰۶۰ ه ق کال په حدود کې خوشال
خان خټك (۱۰۲۲ ه ق زیږیدلی) تقریباً څلویښت

---

۸ ـ وګورئ د دبستان مذاهب ۳۱۱ مخ ـ دولت
لوانی هم د رشید خان الهداد خان روښانی دمړینی
کال ۱۰۵۷ ه ق کښلی دی .

په یوه آه یې ارواله تنه بیل شو
په تاریخ د عین ونون چې یې سفر و

په هندوستان کی د ګنګا دسند پرغاړه رشید آباد
نومی ښار دغه رشید خان روښانی ته منسوب دی .

کلنی ته رسیدلی او دشاعری له شروع څخه یې
تقریباً شل کاله تیر وو ، دیوه معاصر په توګه د
واصل روښاني ذکر د خوشال په دیوان کې
کې هم دد غو وړخو شپو خبره ده .

دخو شال په یوه بله قصیده کې چې د تصلف
په توګه ددولت لوانی او واصل روښاني په
نظمونو ریشخند وهل شوی دی (۹) ، هلته
د(ؤ) کلمه دې ته اشاره کوي چې دغه دوه
پښتا نه شاعران په دغه وخت کې ژوندي نه وو
اوخوشال خان دد وی ترمرګ وروسته هم څو
کاله نور ژوندی ؤ . دبا یزید روښان د کتاب

---

۹ـ که دولت ؤ که واصل ؤ که دانور وو ـ په خبرو
می د هر یوه ر یشخند کړ .
(٦٠٠ مخ د خوشال د یوان ـ دکندهار چاپ . )

په ۵۷ مخ کې چې ښاغلی مولانا قیام الدین خادم دواصل دژوند زمانه دخوشال خان تروختو و اندې ګڼلې ده، ساته د تأمل وړ خبره ښکاري او دخوشال په وینا کې د «په دادور» قید د تأویل محتاج نه ګڼم.

## دواصل په نامه پارسي دیوان:

د تاشکند په خطي کتابخانه کې د «دیوان واصل» په نامه یو کتاب خوندي دی، د دې دیوان شروع داسي سویده:

منکشف شد تا رموز علم الاسماء مرا
ماسوی الله در نیاید در نظر اصلا مرا

د کتلاک مؤلف ورته ګښلي دي «دا دیوه هندي شاعر د پارسي اشعارو مجموعه ده.» خو زما په خیال دا حکم د تأمل وړ او د زیات تحقیق محتاج دی.

د دیوان لیکونکی د صالح محمد خان زوی خضر خان

نومی سړی دی چی دیو ولسم هجری قرن

په پای (۱۰۹٦ هق) کال کښې یې دغه نسخه کښلې

ده ، د دغه خضر خان په خط څو نور کتابونه

هم د تاشکند په خطی کتابخانه کښې سته (۱۰)

**پوهاند عبدالشکور رشاد**

---

۱۰ ـ د هغو کتابونو نمونه دا دي :

۱ـ قصیده د رز یارات غزنین په ۱۰۹٦ هق کال

۲ ـ لوایح جامی » » »

۳ ـ مرآت الاولیا د محمد عالم سمرقندی تالیف » » »

٤ـ خلاصه خمسه نظامی » » »

٥ ـ مثنوی مجدود بن آدم سنایی غزنوي ۱۰۹۱ هـ ق کال

٦ـ گلشن راز د محمود بن عبدالکریم شبستری په ۱۰۹٦ هـ ق کال

بسم الله الرحمن الرحیم

ای درسم د ریا په علم مسته

دتوحید اهل بیزار له خودپرسته

امانت فکر به څه شکل خاوند کړ

دغفلت ناغه پر ځای لرې پیوسته

راست(و)چپ په حقیقت پېژانده نه شي

په ورزش دعمل فرق شي دست له دسته

دبلی دبلاحرف په صورت یو دی

محتمل حکمت هنر دی له السته

له بی کاره له کر دار اره رانغلې

سترې مشي دمجاز له بند و بسته

کارد یده مصلحتی در سره نشته

په هیڅ جنګ به فتح نه راوړې بې شکسته

عارفا ن و اړه له شر کهمنز ه د ي
لکه غشي پاکیزه وو ځي لهشسته
هیڅ عاقل پهداخبره راضي نه دی
چهبدعت پرجهان لوړوي‌شرع پسته
د «و اصل»چه‌له‌و حدته‌اشنایي شو
په نظر يې‌نیستي نه‌راځي بې هسته

* * *

پسو (۱) وغو لید ي هارو ته
د و حـد ت لـــه ملکو تـه
عقـل کـل در ځخـه و لپښ (۲)
خا لی پا تې شو ې مبهو ته
که د رو غ وا یم گر میږ م
هیڅ د ې کم نه د ي له بو ته

۱ــ پسو ــ په‌ځو .
۲ــ لپښل‌ــ کو چیدل .

اوس که لښکا فران د برد ي
زنـا ر نـه لـر ي را چپو ته
د روغجنه مړی ځکړ ې (۱)
رنگ يې به د ی تر يا قو ته
بي حکمته په چا ر نه د ي
بي هو د ه پخيد ې تو ته
که با غي و نه با له شې
څه د ې بهدي لبلو ته ( ۲ )
ر ښتيا و ا يم ز هير يږ ې
لا بتر شې تر سکو ته
د يقيـن تبر د ې پـخ د ی
نه پر ې کيږ ي له نا سو ته

---

۱ـ څه کړ ې .
۲ـ له بلوطـخيری .

کاهلی دربندې بارشوه

ملا و نه تړې مذبو ته (۱)

په اصلي صورت دې وینم

زړی نه لړې نخو ته (۲)

دطاعت درمند دې لېږ ؤ

خالي پاتې نه شی لو و ته (۳)

د«و اصل»و ینا حدیث دی

سو تو اقبل ان تموت

* * *

خوزما رضا یوه وي دتابله

پهدو یی کې به مانهموسې و اصله

نه په کوم دلیل زمادچارېغمخورې

اې مدام له ماپرد یه دځانخپله

---

۱ – مضبوطه .

۲ – نخود.

۳– له وو ته .

دگومان په قوت‌ته زه درسره یم

په صورت‌در ته څرګند شم قل ترتله

ته‌زما په‌هستي هست حکم مختاریې

زه قدم در باندې ږدم ته مې اخله

که دګلو خوشبویي شم ته‌مې بوی کړه

که‌میوه شم په شاخ ځانګه ته‌مې وله

زما اجر نیم دځان نیم دجهان دی

یوه چار مې په‌دوه ځایه وویشله

هورې لمردې له نظر یم تماشا کړم

دلې غوږ هو رې کلام یم یابدله

په جهان کې لذتونه دلې خو له‌یم

ګل ترخه خوا ږه‌مې وتلل په تله

دانسته دې‌لاس‌له نور و خلکو رانیو

ترو (۱) چې ځای دغرض نه‌و ینې مه‌نښله

۱ـ ترو: نور.

که اصلي وجودي زه يم له سامه څه

که غرض دي خپل ګومان دی پسې ځغله

اې «و اصله» حقيقي و اصل هغه دی

چې زه يې يادو م ځان يې هير وي تل تر تله

* * *

هر ځو و تښتي له ځا نه

و به نه وځي له جهانه

دا زل د غره له سره

ترا بده شهر ستا نه

دا قطره وه اوس نته

هيڅ ضايع نه شوه له ميانه

معطلي يې حکم نه دی

ځو جدا شوې له کانه

رنګ و نوم يې مبدل کړه

په ځو رنګه په ځو شانه





یکتایي دي مبارك شه
که یې و اغوندې انسانه
ناداني دي توره شپه وه
نه او ده وې بې کومانه
لکه لمر دربانده وخوت
سایه روغه شوه له خانه
د سایې معنی سجده ده
له آفتابه کړیزانه
نیمه ورځ شي نه خوځېږي
سایه نه کړې پنهانه
چې رښتینی عدل راغی
ظلم و لېښ له جهانه
دبادشاه ښاخه (۱) دي وکړه
کاشکې خلاص شي له تاوانه

۱ـ ښاخه امکان لري چې (خاصه) ولوستل شي.

اسانت ښندل آسان دي
اشنايي عجيبه ګرانه

ويده مشه حاضر اوسه
ليوه درغی چوپانه

که دنوح په کښتی ګله شوې
سر دې و کيښ له توفانه

دا نه هر چيرې ګرلې
درمند نه شي بې دهقانه

فالبي لو ښي رغيږي
بې ختمې بې سندانه

الف تېکی نه اخلي
درست نشان دی بې نشانه

ورخ دشپه له اهله نه ده
اندېښنه لره عيانه

نا بينا اشنا يي نـــه زده

دوحدتشمع تـا بانه

هـر نقش پـه حكمت دى

پو شيده له تا په تا نه

د يقين عـا لـم خبر شـي

په حجاب لهاين وآنه

و اصل خپل عيب نيو لى

خوك به خه وايي لهچانه

* * *

جهانروغدى لهسودههملهزيانه

دباطن پر يشاني مه كنهاسانه

هراحوالچيپر صورتباندي‌تيريږي

پهقدرتيي‌بيرونهدى‌لهفرمانه

دحكمتدا هل زړو نه رحمتى‌دي

قياس كه دبل‌عذاب لهخپلهځانه

ز عذاب پر ناز کانو مرګ اسان دی
خوب نیولی خبر نه دی له زندانه
هر عمل دنیك و بد پهسړي پور دی
لکه ګل هسې اغزی شي له بوستانه
تل داو سپېنو له زنګ ملاحظه شي
که هر څو اصلي جو هر لري له کانه
مسکینا ن له هره غمه فراغت دي
د بادشاه تفاوت څه دی له چو پانه
د دنیا په زیان به چیرې راضي ګیږي
د «و اصل» په دو دزړه جمع چارپر یشانه
* * *
د غفلت په قوت هسی بیګا نه وې
د فنا اندوه دې نه کړه مړ دانه وې
دغه یو عمر دې تیرپه ویر انی کړ
بل په هسې عمر پر وت په ویرانه وې

اشنایان به ستاله لاسه نښان ګوري
بیابه ته دنورو لاسو نښا نه وې

اوس دنورو افسا نه په ژبه وایي
بیابه ته دنورو ژبو افسانه وې

داهوا هوس ونورو وته پریږده
که هر څو د نازکانو جانانه وې

داسمان ځمکه په نورو ستر ګو ګوري
ته یې هم دیوه دوربها نه وې

استخوان به دې خبر له حاله وایي
چې پیداشوی په کومه زما نه وې

دازل په ارادت کې خپلوي ده
دکثرت په منزلو نو بیګا نه وې

ورورستی نوم دې په بل رنګه نه بدلیږي
نور به بله نیستي نه وي چه فلانه وې

بې مثلي دې قراري ده له بې نيازه

په قدرت به بې خرده فرزانه وې

دو صال صورت دې زيات دی له تعريفه

له او له اخر غم لره سيا نه و ې

دغفلت بيدار و يده گر خوې مستـه

په خو ډير دې يون غلط کړې مستانه وې

که سفر دجار و تو په وعده نه و ي

د«و اصل» کره به چيرې هم خانه وې

* * *

هغه سخ چې دآسمان د څمکی نور دی

تجلي کاندی پر هر لوري حضور دی

دانسته يې په حجاب کې خپسر پټ کړ

ليده نه شی جهان و اړه څنې پور دې

عارفان يې په پنهان اشارت مست کړه

او پلو دوراند ې وړې دايې دستور دی

له خاصانو سره ستر پرده نه شي
سپین سباپر نا محرسو باندې ګور دی
که منصوري په دار وژی غم یې سه خوره
نن یې زړه له یار سپین سر و ندیې سوردی
چې پر هسې شه دیدن باندې قربان شي
په هغه لوري عیدلې عاشوردی
چه دروح ازادي تل ترتله غواړي
اوس دتن اساني نه که په ضرور دی
نا اشنا اصل خبر نه دی له خانه
په ګومان به خپسر روغ ګنمي رنځور دی
لکه سهر پاکیزه نه وي له غشه
دصور تښایست یې وار ه نامنظور دی
اې «و اصله» دګومان له اهله مه شه
دپیالې ګناه به و بخښي غفور دی

چې په ډیر دلیل ددرست جهان محبوب یې
که هوس د طاعت نه لرې محجوب یې
ښه امید در څخه کوم قوت بې ځای کړی
د ابلیس په دود د خپل عمل جاروب یې
جسمانې لذت تا لاوشه د شهده
په مستۍ کې ترسرۍ پورې ډوب یې
د ناسوت په غلبه کې سرګردان شوې
روحانې اندازه نه سومې مغلوب یې
پیر کامل ظاهر باطن درته اعلام کړه
په نظر له پردو غړی د معیوب یې
ډیر له شرعه له اسبابه برهنه شوې
له خوړو له جامو وو څه که مجذوب یې
اوس به ولې له طاعته ځان پرې باسې
په فرمان د الهی کښلی مکتوب یې

د سلیما ن پر جها ن حکم د نگین ؤ
بې یو سفه نا بینا لکه یعقو ب یې
پر چا ر پا ی معرفت طا عت حرا م د ی
حیوا ن مه شه دانسا ن په نا م منسوب یې
نو ر یې وا ړه ستا داسر بندگي دار کړه
یکتنها دی ستا صا حب ته یې مصحوب یې
د«وا صل» په قو ت نشي چا ر د خدای د ه
که هر خو د ر ته جلو ه کا نا سر غوب یې

* * *

هر چی دا اشنا یې وي پر بل مین شي
گل ښا دي به یې بدله په شیو ن شي
د محبو ب رضا تما مه وفا غو اړي
یخ یی چېر ي تا ب سهلی ددید ن شي
که خیمه یې د فلك پر با م و هلې
دالمن یې زمین د وزه بې سو ز ن شي

حا جیا ن چی د کعبې ا ر ز و نیو لي
په‌طلب یې اند وه چیرې د وطن شي

مسا فر له غیبه چا رې خبر نه د ی
چی قسمت‌نصیب یې کوم ا و به نغن شي

که‌عا شق و ر پسې و سر ی‌مزدي خد ای‌د ی
یو ه دانه یې په‌حسا ب ز یا ته تر من شي

د صو رت‌گو ما ن یی و وژي حیا ت شه
خه پر وا یې د و کښلي پیرا هن شي

مسکینا نو کل اولس په ځا ن وژلی
د چولی شیو ه یې چیرې په کفن شي

د صا حب د بې حد ی پر و ا نشته
که سړ ی له عبا د ته کبر جن شي

شر یعت د معرفت د غا ړې ها ر د ی
و معراج و ته خا ته په د ارسن شي

ای «واصله» بد غفلت‌د زړه غبار دی
یو د یار صیقل‌د رواخله چه روشن شی



خود پرستەدعزازیل سره یو کوردی
په‌بدجهل د شیطان سکنی وروردی
په تزویر یې دریا خرقه اغوستې
که‌د پاسه مخ یې سپین استر یې‌نوردی
په لباس د مسکینانو خوی اخلي
اوسر پو بن یې‌پر خالی طبق نسکوردی
د یقین ډیوه یې نه ده ځلید لی
که‌د سر سترگې(یې)رونې په‌زړه کوردی
د پدرکر ده یې پر یښوه عاصي شه
په دالوی نصب د کبر پر خره سوردی
نا خلف پسر حرام بللی بویه
کورد پلار ویر انوي سین پر موردی

د نیکانو له بدانو ملا حظه شي
لا د وړاندې دم پرې اچوي سنگو ردی
خو د نما یو جهان و نیو په تګیی
هیڅ رښتیارا و یل نه شي د و رچو ردی
بخیلان به له ایمانه سر ه نه ځي
هغه بدعمل د تیر ساعت پیغو ړ د ی
ا زمو د ه به له فسا د ه منع نه شی
صبر حلم پر پا کا نو با ندې پو ردی
ې« و ا صله» خپل عز ت له خدا یه غو اړه
ملك یې و نیو د شیطا ن دخو کی زو ردی
* * *
هر چه یو سړ ی ا نګا ر شي
عیا ل د ر ست پسې بیما ر شي
ځینې د ی غو اړي ا رما ن کا
خوك د خپل صو رت په ډا رشي

د لسو زان يې کوم علاج که
مگر خپل عمل يې يار شي

اول دا پل صراط دی
چې په ډير کاله حصار شي

ډېر ستغ دی ډېر نښوب (۱) دی
واړه ډير ش زره په شمار شي

ساه چه پورته کښته کاږي
تر نظر يې هوموه‌لا رشي

پر دا هسې سخته لاره
عمل درست دځان تکرار شي

د ابد بخره يوه ده
گوره شمار په کوم قطار شي

دوه قيامته دي راغلي
عمل يو په يو دوچار شي

---

۱- نښوب= نشيب «کښته-ځوړ» .

یو قیا مت په‌دا حیا ت دی
وخت‌پر وخت با ند ې قرا رشي

هر چه و کا هغه مو مي
دی یې نه وینې ا نکا رشي

او د و م قیا مت قیا ست دی
چې یې تل تر تله زا ر شي

که یې یا د کا گنهگا رشي
که یې هیر کا لا کفا ر شي

خپله زیر مه که د وخته
خذ متگا ر د خذ متگا ر شي

شر یعت رښتیني لا ر ده
د راه ر و یې په قطا ر شي

معر فت یې عنا یت دی
عبا دت به یې په چا ر شي

د بندگی لا یق سړ ی د ی
نو ر قا مو نه په څه شما ر شي
په خد ای هیڅو ك نه پو هیږ ي
سړ ی یو په د ا اطو ا ر شي
سجد ه ځکه با ند ې فر ض شوه
تر د ې هسی کر م جا ر شي
ژ ر به و رشي تر مقصو ده
چی محکم په خپل رفتا ر شي
د د ې لا ر ې ز و ر ډ یر د ی
لو ی کا مل یې هو د ه دا ر شي
ز ړه کعبه د الهی د ه
که محر م ددې ا سر ا ر شي
علم ځکه ا ما نت شو
چی ا سر ا ر پکې ا ظهار شي

معرفت يې کرامت کړ
پهده هر حجاب هوا رشي
تل تر تله يې راحت دی
چه يقين يې پر کرار شي
وچ لرگی گلو نه نه که
تازده ونه نوبهار شي
دگناه صابون توبه دی
جامه پريوه له زنگار شي
چه دصدق باب يې ولوست
پسې عدل استوار شي
شرم حلم يې پوشش دی
علم پاس دسر دستار شي
توبه پاتې له آدمه
عبادت دنبي کار شي

نصیحت د کا ملا نو

د نا دا ن علا ج په ډ ا رشي
په ا سلا م با ندې ا قر ا ر که

چې يې سر په ذ و ا لفقا ر شي
هیڅ حیو ا ن په لا ر ې نه ځي

څو علا ج يې په اوسا ر (۱) شي
وجو د و نه د چند ن شي

نو س يې عین تو ر شا ما رشي
و ا صل و اړه ا جا ر ه کړ ه
تر حضو ر د يد ن يی جا ر شي

* * *

دعا رف ز ړ گی پر ځا ی دي
چې اول و ا خر خد ا ی دی
د دو و کو نو صا حبي که
هغه کو ر او دايې سر ا ی دی

---

۱– او سار = افسار .

د قلم په دوه دوه نيم شه
ژوندی گرځی سر يې بای دی

د معنی د ور کلید و
هر کلام يې دلکشای دی

گدايان يې دولت من کړه
پا چا يی بخښي همای دی

ترځوانی يې پیران جار شه
صحبت يې غم فرسای دی

د آدم د احمد چار شوه
پلار فرع اصل زای دی

هر چی د احساب يې نه زده
د هغه په ژوندون وای دی

که صوفی په نه پوهیږي
گرم يې سه کړه علف خای دی

د گو ما ن و رقه یی زبر کړه

د یقین و رکه یې لای دی

مبا ر ك به یې په خو شي

نااندرتی یې سر و پا ی د ی

ځمکه چیر ې وا ړه گل کا

هر چه مشك لری خطا ی د ی

« وا صل » و و یل لهسا زه

پر عا قل باند ی کر ا نای دی

* * *

چی تو به په زور کا ته لري مشکل دی

چه داصل پا کیز ه وي هغه بل دی

که اصلا ح یې د ظا هرد باطن نه وي

بې حسا به لکه و نه د ځنگل دی

د نیکا نو بد ي شه نه شي له ځایه

هرچی سینه پرپا کی لر ي پاك دل دی

ځو د غیر له نجاسته خالي نه‌شي

خپسر هور ځو پاکیزه ګنې خجل دی

د ښتن پر خپل بنده بد پیر زونه دي

په ګومان ځنی‌و یر یږي خدای یې خپل دی

پر هر زړه چه معرفت قراري نه کا

عرش الله بللی نه بو یه‌بخل (۱) دی

په‌نظر به د نفی واړه اثبات کا

فکر مل د هر مقام د هر منزل دی

د «واصل» قوت له کومه چې سنت که

د سولا قوت په خپله محصل دی

---

۱ـ بخل = به‌ځل (کرونج) ۰

دا صیل سړي له بدې چارې عار شي
در سوز اهل به چیرې گنهگار شي

د هوښیار و روزگار واړه په رسوا دي
در سوز اهل به چیرې گنهگار شي

که په جهل داد ب له تو ره ووځي
خو په خپله رضا د روسي لا به خوار شي

نا دانان په جهان څکه خدای پیدا کړه
په سر غو نو ځینی د ځینو ښکار شي

نصیحت دې وازو کو نو لره بد دی
خو په وروقد ما خلې غرض دې غار شي

هر خوب پر جاهلانو باندې خوږ دی
په ناکام به دسرو د په غېږ پیدا ر شي

د رښتیا وینا خبر په اگاه شر ط دی
هر چې ور وردور ورښه نه غواړي کفار شي

اتفاق د فراغت د پاره ښه دی

جمعیت لکه تسبیح په یوه تار شي

حضور له سحبا نو نوبهار دی

سحبت یي سره گلو نه مرغزار شي

ای «واصله» کل مدار د زړه په لاس دی

چې دده په رضا نه وي گومه چار شي



چه اشنای د حقیقت پر مهربان دی

سود و زیان سي په تهمت با ندي اسان دی

ساپه خپله دی پناه ور خخه غوښتي

چې د یار مهر لرم تمام جهان دی

دوا صل تر هستی زیا ته هستي نشته

چې د ځان قوت یې رانیو پهلوان دی

کر اري د زړه په سینه د مو لا شي
هرچي زړه یې پرقرار شی خه یې زیان دی

په تیاره کې خپل سیوری لید ه نه شي
دادصبح روښنا یې د لمر نښا ن دی

نیمه ورځ د سایې نخښه پاتې نه شي
که ها له کمان لري کجی د ځا ن دی

خوشه چین به د پلوه بهره نه وړي
او رښتنی عمل د رمند دد هقان دی

د حکیم سړي له سکره کمی نشته
تراسلامه پورې یې شرم د ایما ن دی

معرفت دې پر مشتا قو مبارک شه !
د «واصل» منصب یې زیات کړ قدردان دی



ای چې قضا دی په قصد رضا دی
له خوبه وپښ شه سپینکی سبا دی

ځرګند افسون دی په نه پوهیږي

په خوب کې وینې چې خوب رښتیا دی

ذات پرقرار دی صفات بدلیږي

استوګه نشته امید خطا دی

فلکه څرخ دې نه قراریږی

هر څو سفر کا مقام یې داد ی

یوه ذره وه په ځان غره د ی

ورك دې پر دی شه تا و انزما دی

که سلامت یې درست امانت یې

کبر په چا کړې شیوه په چا د ی

هر چه فاني شه باقي به اوسي

او معرفت یې د خون بها د ی

عارف دانا دی حساب یې و کړه
زکوة یې و کیښ باقي روا دی

بشر انسان شو گدای سلطان شو
په روح راحت کا د زړو با د شاه دی

وحدت یې و نه کثرت یې پا نې
او دذات زړه یې اصل بقا دی

باطن خاموش شه ظاهر بنه غیږی
لاهوت قرار شي ناسوت غوغا دی

یوا ځې تل دی چې تل به اوسي
«واصل» گواهي لیچې یو یکتا دی


PROPERTY OF
ACKU
9167


PROPERTY OF
ARIC
Established
1989

ON THE OCCASION OF INTE
RNATIONAL SEMINAR OF
BAYAZEED ROASHAN

# A few Poems from Wasel Roashani

**Pashto Academy**

**1975**




دولتی مطبعه